تکمله هم لري چې ملا فضل بېګ روښاني په شلم قرن کې پوري نښلولې ده.
عکسي نسخې يې په ماوراء النهر کې وې چې يوه نسخه يې عکسي هم
چاپ سوې ده.

## ﴿ ۱۳۱ ﴾

## هنورام د (تاريخ بلوچستان) مؤلف

دا سړی د شلم قرن په ابتداء کې د انګريزي بلوچستان يو مامور و.
چې د بلوچستان يو تاريخ يې په اردو په کوټه کې وکښئ. چې ۱۹۰۷
م کال په لکنهو کې چاپ سو.
دا کتاب د افغانستان او بلوڅو روابط او تاريخي واقعې د بلوڅو د
شجرو او انسابو سره ښه راښيي. کله جغرافي او رجالي برخې هم لري.

## ﴿ ۱۳۲ ﴾

## تاريخ قندهار در عصر دراني

په لوړ نامه يو فارسي کتاب د لندن په انډيا آفس نمبر ۳۷۶۹ سته
چې د مؤلف نوم يې نه دی معلوم.

## ﴿ ۱۳۳ ﴾

## راى چنرس د (چهار ګلشن) مؤلف

دا سړی په هند کې اوسېدی په ۱۱۷۳ ق کال يې خپل کتاب تاليف
کې چې بيا نو د ده لمسي راى بهان منشي په ۱۳۰۴ ق تکميل کړی دی.
خطي نسخې يې د هند په علي ګړ او بانکي پور او برټش موزيم کې سته او
خورا ګټه ور کتاب دی چې د هند د پښتنو شاهانو تاريخي معلومات لري او
د افغاني درانو د وختو دولتي عايدات هم په شرقي ولاياتو، لکه لاهور او
ملتان کې ښيي.



## ﴿ ۱۳۴ ﴾

## عصمت الدين د (خلاصة الاخبار) خاوند

دا سړی د محمداسماعيل زوی او د مير محمد لمسی و چې د امير
دوست محمد خان لنډ احوال يې تر ۱۲۵۴ ق پوري په فارسي کښلي و او
دوې خطي نسخې يې د بنګال په ايشياټک سوسايټي کې وې. چې په نهم
قرن کې ليکل سوي وې.

## ﴿ ۱۳۵ ﴾

## سيد محمد طباطبايي اصفهاني د (نسب نامه افاغنه) مؤلف

دا مؤلف په ديرلسم قرن کې د ايران اوسېدونکی و چې د انګريزانو د
سفير هنري ايليس په خواهش يې په ۱۲۲۴ ق يو کتابګوټی د (نسب نامهٔ
افاغنه و کيفيت حکومت آنها) په نامه وکښئ، چې د افغانانو لنډ تاريخ او د
دوی حکومت پر پاريس باندې بيانوي او د افغانستان د ښارو او اقوامو او
قبيلو شرح لري، چې يوه خطي نسخه يې د بنګال د ايشيايي ټولنې په
کتابخانه کې وه، د ۱۲۲۴ ق کال ليک.

## ﴿ ۱۳۶ ﴾

## ثاقب د (تاريخ افاغنه) ليکوال

مؤلف يې محمد شهاب الدين خان ثاقب دی، چې د ۱۹۰۰ م په
شاوخوا کې د هند له پښتني کورنيو څخه يو ليکوال و او دا کتاب يې په دوه
ټوکه کې په اردو ژبه د لاهور په حميديه پريس کې په ۱۳۲۳ ق کال چاپ
کې. لومړی ټوک ـ ۱۲۴ مخه، دوهم ټوک ـ ۲۱۴ مخه.
دغه کتاب هم د افغانانو د اسرائليت عنعنوي داستانونه لري خو ډيري
داسې خبرې هم پکښې سته، چې تاريخي اړخ يې ټينګ ښکاري او د

افغانانو د اولیاوو احوال یې د نعمت الله له مخزن افغاني څخه را اخیستي دي.

## ﴿ ۱۳۷ ﴾

## احمد د (معدن اخبار احمدي) لیکوال

احمد بن بهبل د جانګیر په وختو د ۱۰۲۸ ق په حدودو کي دغه کتاب په دوه توکه کي کښلی او د شرق عمومي تاریخ دی، چي د هند د افغاني شاهي کورنیو لودیانو او سوریانو احوال هم پکښي سته، د کابل په ارشیف کي یې هم یوه خطي نسخه سته، د برټش موزیم او انډیا آفس نسخې یې هم معلومي دي.

## ﴿ ۱۳۸ ﴾

## محمد بدر الرحمن د (واقعات دراني) مؤلف

دا کتاب د درانو د سلطنت تاریخ دی، له احمدشاهه د شاه شجاع تر قتله ۱۲۵۷ ق پوري چي د افغان او انګریز لومړی جنګ لا جاري و. د هند په کانپور کي چاپ سوی دی او د طبع تاریخ نه لري.